اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَ الصَّلٰوةُ وَ السَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الْمُرْسَلِيْن
اَمَّا بَعْدُ فَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ؕ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ؕ

# دکتا ب لوستلو دُعا

**دینی** کتاب یا اسلامی سبق لوستلو نه مخکښ دا لاندې دعا اولولئ
اِنْ شَــآءَالــلّٰــه عَزَّوَجَلَّ کوم څه چه لولئ نو هغه به مو یاد پاتې کیږي:

## اَللّٰهُمَّ افْتَحْ عَلَيْنَا حِكْمَتَكَ وَانْشُرْ عَلَيْنَا رَحْمَتَكَ يَا ذَاالْجَلَالِ وَالْاِكْرَام

**ترجمه**: اے اللہ عَزَّوَجَلَّ په مونږه دَعلم او دَحکمت دروازې کهولاؤ کړه او په مونږه خپل رحمت رانازل کړه! اے عظمت او بزرګی والا!
(مستطرف ج1 ص40 دار الفکر بیروت)

(اول او آخر کښې یو یو ځل دُرود شریف اولولئ)

### دَکتاب اخستونکي متوجّه شئ

**که دَ کتاب په طباعت کښې څه ښکاره خامي وي یا پاڼرې کمې وي یا په بائنډنګ کښې مخکښې وروسته لګیدلې وي نو مکتبةُ المَدینه ته رجوع اوکړئ.**

# د پیریانو بادشاه

از : شیخِ طریقت امیر اهلسنت ، بانئِ دعوتِ اسلامي

**علامه، مولانا، ابو بلال محمد الیاس عطار قادري، رضوي**

دامت برکاتهم العالیة

**د ترجمې پیشکش:**

مجلس تراجم (دعوتِ اسلامي) د دې رسالې په آسانه پښتو ژبه کښې د وس مناسب ترجمه کولو کوشش کړې دې. که چرې په دې ترجمه کښې څه غلطي یا کمې اوموميئ نو ستاسو په خدمت کښې عرض دې چه مجلس تراجم ته د هغې خبر اوکړئ او د ثواب حقدار جوړ شئ.

**مجلس تراجم دعوتِ اسلامي**

عالمی مدنی مرکز فیضانِ مدینہ محلہ سوداگران

پرانی سبزی منڈی، باب المدینہ کراچی، پاکستان

**UAN:** ☎ +92-21-111-25-26-92 – Ext. 1262

**Email:** translation@dawateislami.net

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ وَالصَّلٰوۃُ وَالسَّلَامُ عَلٰی سَیِّدِ الْمُرْسَلِیْنَ
اَمَّا بَعْدُ فَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ ؕ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ؕ

# (1) د پیریانو بادشاه

## د درود شریف فضیلت

دَ نبیانو سلطان، رحمتِ عالمیان، سردار دوجهان، محبوبِ رحمٰن صَلَّی اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم فرمائي:"چاچه په ما باندې د**جُمعې** په ورځ دوه سوه ځله درودِ پاک اولوستل دهغه د دوه سوه کالوګُناهونه به مُعاف شي-

(جمع الجوامع للسیوطي ج 7 ص 199 حدیث 22353)

صَلُّوا عَلَی الحَبِیب! صَلَّی اللّٰهُ تَعالٰی عَلٰی مُحَمَّد

د **ابو سعد** عبدُالله بن احمد بیان دې: یو ځل زما لورفاطمه د کور د چهت نه ناڅاپه ورکه شوه. زه ډېر وارخطا شوم او د سرکار بغداد سیِّدُنا حُضور **غوثِ پاک** رَحْمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلَیْه په خدمتِ بابرکت کښې حاضر شوم او فریاد مې ورته اوکړو. هغوئ رَحْمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلَیْه اوفرمائیل:کرخ ته لاړ شه او د هغې په بیابان [یعني شړو] کښې د شپې په یو خټ کښینه او د ځان نه یوه کرښه راتاؤکړه. هلته بِسمِ الله اولوله او زما تصوّرکوه [یعني ما په خیال کښې یادوه]. د شپې په تیَرو کښې به ستا ګیرچاپیره د **پیریانو لښکرې** تیریږي د هغوئ شکلونه به ډېر عجیبه عجیبه وي،

هغوئ نه یریږه مه، د پیشمني په وخت کښې به **د پیریانو بادشاه** تاته حاضرشي او ستا نه به ستا د حاجت په باره کښې تپوس اوکړي. هغه ته وایه: "زه شیخ عبدُالقادر جِیلانی قُدِّسَ سِرُّهُ الرَّبَّانِی د بغداد نه رالیږلې یم، ته زما لور راپیداکړه." زه د **کرخ** بیابان [شړو] ته لاړم او د حضور غوثِ اعظم عَلَیْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَکْرَم په ښودلې شوي طریقه مې عمل اوکړو.د شپې په خاموشئ کښې زما د کرښې نه باهر **یرونکي پیریان** تیریدل، د پیریانو شکلونه دومره یرونکي وو چه ما ورته کتلې نه شو، د پیشمني په وخت کښې د پیریانو بادشاه په اَس سور راغې د هغه نه ګیر چاپیره د پیریانو ګڼړه وه.دکرښې د باهر نه هغه زما نه زما د حاجت تپوس اوکړو. ماورته اووئیل: چه زه حضور غوثِ اعظم عَلَیْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَکْرَم ستا خوا ته رالیږلې یم. چه دا ئې واوریدل نو یو دم د اَس نه راکوز شو او په زمکه کښیناستو، ورسره نور ټول پیریان هم د کرښې نه باهر کښیناستل. ما ورته د خپلې لور د ورکیدو واقعه بیان کړه.هغه په ټولو پیریانو کښې اعلان اوکړو چه جینئ چا تښتولې ده؟ په لږ ساعت کښې پیریانو یو **چیني پیرې** نیولې راوستو او د مُجرم په طور ئې حاضر کړو. د **پیریانو بادشاه** د هغه نه تپوس اوکړو: د وخت د قُطب حضرت غوثِ اعظم عَلَیْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَکْرَم د ښار نه تا جینئ ولې اوتښتوله؟ هغه په

رپیدو رپیدو اووئیل: بادشاه سلامت! ما چه ځنګه هغه اولیدله نو پرې مَیَن شوم. بادشاه د هغه چینې پیرې د ښځ وهلو حکم جارې کړو او زما ګرانه لور ئې ماته حواله کړه. ما **د پیریانو د بادشاه** شُکریه ادا کړه او ورته مې اووئیل: **ماشَاءَاللّٰه** عَزَّوَجَلَّ تاسو د سیِّدُنا غوثِ اعظم عَلَیۡهِ رَحۡمَۃُ اللّٰهِ الۡاَکۡرَم سره ډیر محبّت کوئ، په دې هغه اووئیل: **بیشکه چه کله حُضورغوثِ اعظم** عَلَیۡهِ رَحۡمَۃُ اللّٰهِ الۡاَکۡرَم **زمونږ طرف ته نظر اوکړې نو [په مونږ ټولو] پیریانو باندې ړچ اولګي. چه کله اللّٰه تبارک و تَعالٰی څوك د وخت قطب مقرر کړې نو پیریان او انسانان د هغه تابِع [منونکې] کړې شي۔**

(بهجةالاسرار للشطنوفي ص 140 دارالکتب العلمیة بیروت، زبدةالاثار ص 81)

تھرتھراتے ہیں سبھی جنات تیرے نام سے
ہے ترا وہ دبدبہ یاغوثِ اعظم دست گیر

مفهوم: اے غوثِ اعظم دستګیره تاسو له اللّٰه عَزَّوَجَلَّ داسې دبدبه درکړې ده چه ستاسو د نوم د هیبت نه ټول پیریان په لړزان دې.

صَلُّوا عَلَی الحَبِیب!   صَلَّی اللّٰهُ تَعالٰی عَلٰی مُحَمَّد

## (2) د غوثِ پاك دیوانه

د **سکِ** مدینه عُفِیَ عَنهُ د نِیکونو د کلې کُتیانه (ګُجرات، الهِند) یوه واقِعه راته چا وئیلې وه چه هلته به **د غوثِ پاك یو دیوانه** اوسیدلو،

هغه به د **يوولسمې شريف** [نياز خيرات وغيره] په ډيرې پابندئ سره کولو. يوه خاص خبره په هغه کښې دا هم وه چه هغه به د **سيِّدانو** ډير زيات تعظيم کولو، د سيِّدانو په وړو وړو ماشومانو د هغه د مهربانئ دا حال وو چه هغوئ به ئې په غيږ کښې ګرزول او خواږه [څه خيزونه] وغيره به ئې اغستل او په هغوئ به ئې خوړل. هغه ديوانه وفات شو. په مړي باندې څادر غوړيدلې وو، خفګان کونکي خلق ورته راجمع شوي وو چه ناڅاپه ئې څادر لرې کړو او **د غوثِ پاك هغه ديوانه** راپاڅيدلو او کيناستو. خلق په يره کښې اوتښتيدل، هغه ورته اووئيل: يريږئ مه، خبره واورئ! خلق چه ورته نزدې راغلل نو هغه اووئيل: چه اصل خبره داده چه اوس اوس زما د يوولسمې څوان آقا، پيرانِ پير، پير دستګير، روشن ضمير، قُطبِ ربّاني، مَحبوبِ سبحاني، غوثُ الصَّمَداني، قِندِيلِ نوراني، شهبازِ لامکاني، پيرِ پيران، مِيرِ ميران، الشَّيخ ابومُحمّد عبدُالقادِرجيلاني قُدِّسَ سِرُّہُ الرَّبَّانِي تشريف راوړې وو، هغوئ زه په ټوکر اوهلم او وې فرمائيل: "**ته زما مُريد ئې او بې توبه مړ شوې، پاڅه او توبه اوکړه.**" اَلحَمدُلله عَزَّوَجَلَّ په ما کښې روح واپس راغلو د دې د پاره چه زه توبه اوکړم. د دې وئيلو نه پس ديوانه د خپلو ټولو ګناهونو نه توبه اوکړه او کَلِمهِ پاك لوستل ئې شروع کړل او بيا ناڅاپه د هغه سر يو طرف ته زوړند شو او وفات شو.

رضاؔ کا خاتِمہ بِالخیر ہو گا     اگر رَحمت تری شامل ہے یاغوث

**مفهوم:** یا غوثِ پاك رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه چه ستاسو برکتونه شامِل حال وي نو ان شآءالله عَزَّوَجَلَّ د رضا خاتِمه به په خير کيږي.

د **سرکارِ** بَغداد حضور غوث پاک رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه ديوانو او مريدانو ته دې مبارک وي ځکه چه سرکارِ بغداد رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه فرمائي: **زما مريد چه څومره هم ګناهګار وي هغه به د هغه وخته پورې نه مړکيږي تر څو پورې چه هغه توبه نه وي کړې.** (ايضاً ص 191)

مجھ کو رُسوا بھی اگر کوئی کہے گا تو یُونہی
کہ وہی نا وہ گدا بندہ رُسوا تیرا

مفهوم: که چرې ماته څوك رُسوا هم او وائې نو داسې چه دا هغه [رُسوا] دې کوم چه ستاسو رُسوا فقير دې.

صَلُّوا عَلَى الحَبِيب!     صَلَّى اللهُ تَعالٰى عَلٰى مُحَمَّد

## (3) زړونه زما په مُوټي کښې دي

حضرت سيِّدُنا عُمر بزار رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَيْه فرمائي: يو ځل د جمعةُ المبارك په ورځ زه د حضورغوثِ اعظم عَلَيْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَكْرَم سره جامع مسجد طرف ته روان ووم، زما په زړه کښې خيال راغې چه عجيبه خبره ده، چه

کله هم زه د مُرشِد سره د جُمعې په ورځ جُمات طرف ته څم نو د سلام او مصافحه کونکو [يعني لاس مِلاؤونکو] د کثرې په وجه تيريدل مشکل شي، نن خو ثوك هډو کوري هم نه! زما په زړه کښ د دې خيال راتلل وو چه حضور غوثِ اعظم عَلَيْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَكْرَم ماته اوکتل او مسکې شو، بس بيا څه وو خلق په منډه منډه د مصافحې [يعني لاس مِلاوولو] د پاره راتلل شروع شو، تر دې چه زما او د مُرشِدِ کريم عَلَيْهِ رَحْمَةُ اللهِ الرَّحِيم په مينځ کښ د کثرې په وجه جُدائې راغله. زما په زړه کښ راغله چه د دې نه خو هم هغه حالت ښه وو. په زړه کښ مې چه څنګه دا خيال راغلونو هغوئ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه ماته اوفرمائيل: اے عُمره! تا خو پخپله دا کثره غوښتله، **تا ته نه ده معلومه چه د خلقو زړونه زما په موټي کښ دي که غواړم نو ځان طرف ته ئې توجّه راواوګرځوم او که غواړم نو د ځان نه ئې لرې کړم.** (بهجةالاسرار ص 149)

کُنجیاں دل کی خدا نے تجھے دیں ایسی کر

کہ یہ سینہ ہو محبت کا خزینہ تیرا

**مفهوم:** الله عَزَّوَجَلَّ تاسو ته د زړونو کُنجياني [چابياني] عطا کړي دي، زما سينه هم د خپل محبّت خزانه جوړه کړئ.

صَلُّوا عَلَى الحَبِيب!  صَلَّى اللهُ تَعالٰى عَلٰى مُحَمَّد

## (4) المَدد يا غوثِ اعظم

د حضرت بِشر قَرَظي رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه بيان دي چه زه د شَگَرو بار کړې شوي 14اوښانو سره د يوې تجارتي قافِلې سره ملګرې ووم. مونږه د شپې په يو خوفناك [يعني يرونكي] ځنګل کښې پړاؤ اوکړو، د شپې په اولنۍ حِصّه کښې زما څلور بار شوي اوښان ورك شو په هغو پسې ډير اوګرځيدم خو پيدا نه شو. قافله هم رانه لاړه، شُتربان (يعني د اوښانو شړونكي) زما سره پاتې شو. سحر ناڅاپه ماته راياد شو چه زما پير و مُرشِد سرکارِبغداد حضورِ غوثِ پاك رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه ماته فرمائيلي وو: "**چه کله هم ته په څه مصيبت کښې اَخته شې نو ما ياد کړه** اِن شَآءَالله عَزَّوَجَلَّ **هغه مُصيبت به درنه لرې شي.**" نو ما داسې فرياد اوکړو: "**يا شيخ عبدُالقادِر! زما اوښان ورك شوي دي.**" يو دم د نمر خاته طرف ته په يو ختې باندې ما په سپينو جامو کښې يو بزرګ اوليدو، هغوئ په اشاره باندې زه د ځان طرف اوغوښتم. زه د شُتربان سره چه څنګه هلته ور اورسيدم هغه بزرګ مې د نظر نه غائِب شو، مونږه په حيرانتيا سره اخوا ديخوا کتل چه ناڅاپه مې هغه څلور واړه اوښان اوليدل چه د ختې نه لاندې ملاست دي، بيا څه وو مونږه فوراً هغه اونيول او د خپلې قافلې سره ملګري شو. (بهجةالاسرار ص 196)

## د صلوٰةِ غَوثِيَّه طريقه

حضرت سيِّدُناشيخ ابو الحسن علي خبَّاز رَحمَةُاللّٰهِ تَعَالٰی عَلَيْه ته چه كله د ورك شوو اوښانو واقعه بيان كړې شوه نو هغوئ اوفرمائيل چه ما ته حضرت شيخ ابوالقاسِم رَحمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰی عَلَيْه وئيلي دي چه ما د سيِّدُنا شيخ مُحيُ الدِّين عبدُالقادِر جِيلاني قُدِّسَ سِرُّهُ الرَّبَّانِي نه دا فرما ن اوريدلې دې: **چا چه په څه مصيبت كښ ما ته فرياد اوكړو هغه مُصيبت ختم شو، چا چه په كومه سخته كښ ما ته آواز اوكړو هغه سختي لرې شوه، څوك چه زما په وسيله سره د اللّٰه** عَزَّوَجَلَّ **په باركاه كښ خپل حاجت وړاندې كړي هغه حاجت به پوره كيږي. څوك چه دوه ركعته نفل اوكړي او په هر ركعت كښ د اَلْحَمْد شريف نه پس قُل هُوَ اللّٰه شريف يوولس يوولس ځله اولولي، د سلام ګرځولو نه پس په سركارِمدينه** صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم **درود و سلام اوليږي [يعني اولولي] بيا بغداد شريف طرف ته يوولس قدمه واخلي** (د پاك و هِند نه بغداد شريف تقريباً د مغرب او شُمال د مينځ طرف ته دې) **زما نوم ياد كړي او خپل حاجت بيان كړي اِن شاءَاللّٰه** عَزَّوَجَلَّ **هغه حاجت به ئې پوره كيږي.**

(بهجة الاسرار ص 197، زبدةالآثار للشيخ عبدالحق الدهلوي ص 109 باكسيلنگ كمپني بمبئي)

آپ جیسا پیر ہوتے کیا غَرَض دَر دَر پھروں
آپ سے سب کچھ ملا یا غوثِ اعظم دستگیر

مفهوم: چه ستاسو په شان پیر لرم نو ولې به در په دركرځم،
ستاسو نه راته هر څه میلاوُ دي اے غوث اعظم دستګیره.

صَلُّوا عَلَى الحَبِيب! صَلَّى اللهُ تَعالٰى عَلٰى مُحَمَّد

## د اللّٰه نه سِوا اد بل چا نه مدد غوښتل

**خوږوخوږو اسلامي ورونړو!** كیدې شي چه د بیان كړې شوي حكایت په وجه د چا په ذهن كښې دا وسوسه راشي چه د اللّٰه نه سِوا د بل چا نه بالكل مدد غوښتل نه دي پكار، ځكه چه اللّٰه عَزَّوَجَلَّ په مدد كولو باندې قادِر دې نو بیا د غوثِ پاك یا د بل بُزُرګ نه مدد ولې اوغواړو؟ جواباً عرض دې چه دا د شیطان ډیر زیات خطرناك وار دې او دغسې پته نشته هغه څومره خلق ګمراه كوي. حالانكه اللّٰه عَزَّوَجَلَّ د بل چا نه د مدد غوښتلو نه هډو منع نه ده فرمائیلې، بلكه په قرآنِ كریم كښې ځائ په ځائ **اللّٰه** عَزَّوَجَلَّ د نورو نه د مدد غوښتلو اجازت وركړې دې، په هر هر شان قادرِ مُطلق كیدو باوجود ئې پخپله خپلو بندګانو ته د دینِ حق د **مدد** كولو د پاره ترغیب فرمائیلې دې. چنانچه په پاره 26 **سوره محمد** آیت نمبر7 كښې ارشاد كیږي:

اِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ

مفهوم ترجمه كنزالایمان: **كه تاسو د اللّٰه** (عَزَّوَجَلَّ) **د دین مدد اوكړئ ، اللّٰه** (عَزَّوَجَلَّ) **به ستاسو مدد كوي.**

## حضرت عیسٰی د نورو نه مدد اوغوښتو

**حضرت** سیِّدُنا عیسٰی رُوحُ الله عَلَيْهِ السَّلَام د خپلو حوَاریانو نه مدد طلب کړو، پاره 28 **سورة الصف**، **آیت** 14 په څوارلسم آیتِ کریمه کښې ارشادِ باري تَعَالٰی دې:

قَالَ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ لِلۡحَوَارِيّٖنَ مَنۡ اَنۡصَارِيۡۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ قَالَ الۡحَوَارِيُّوۡنَ نَحۡنُ اَنۡصَارُ اللّٰهِ

مفهوم ترجمه کنزُالایمان: **عیسٰی** عَلَيْهِ السَّلَام **بن مریم** رَضِيَ اللهُ تَعَالٰى عَنْهَا **حواریانو ته وئیلي وو څوك دي چه هغه د الله** عَزَّوَجَلَّ **په طرف کښې زما مدد اوکړي؟ حواریانو اووئیل مونږ د الله** عَزَّوَجَلَّ **د دِین مددګار یو.**

## حضرت موسٰی عَلَيْهِ السَّلَام د بندګانو ډاډ اوغوښتلو

**حضرت** سیِّدُنا موسٰی کلیمُ الله عَلٰى نَبِيِّنَا وَعَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَام ته چه کله د تبلیغ د پاره د فرعون طرف ته د تللو حکم اوشو نو هغوئ د بنده د مدد حاصلولو د پاره په بارګاهِ خُداوندی عَزَّوَجَلَّ کښې عرض اوکړو:

وَاجۡعَلۡ لِّيۡ وَزِيۡرًا مِّنۡ اَهۡلِيۡ ﴿۲۹﴾ هٰرُوۡنَ اَخِي ﴿۳۰﴾ اشۡدُدۡ بِهٖۤ اَزۡرِيۡ ﴿۳۱﴾

**مفهوم ترجمه کنزُالایمان: او زما د پاره زما د کور د خلقو نه یو وزیر کړې. هغه څوك، زما ورور هارون** عَلَيْهِ السَّلَام **په هغه زما ملا مضبوطه کړې.**

# نيك بندګان هم مددګار دي

پاره 28 سورةُ التَّحرِيم په خلورم آيت مباركه كښې ارشادِ باري عَزَّوَجَلَّ دې:

فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ وَ جِبْرِيْلُ وَ صَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ وَ الْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ ظَهِيْرٌ ﴿۴﴾

**مفهوم ترجمه كنزُالايمان:** نو بې شكه اللّٰه عَزَّوَجَلَّ د هغوئ مددګار دې او جِبريل او نيك ايمان لرونكي او د هغې نه پس فرښتې په مدد دي.

## د انصار معنٰى مددګار

**خوږوخوږو اسلامي وروڼړو!** تاسو اوليده! قُرآنِ پاك بالكل په صفا صفا الفاظو كښې دا ښكاره اعلان كوي چه **اللّٰه** عَزَّوَجَلَّ خومددګار دې دې خو د اللّٰه عَزَّوَجَلَّ په حكم سره سره **جبريلِ امين** عليه السّلام او د **اللّٰه** عَزَّوَجَلَّ مقبول بندګان عليهمُ السّلام او فرښتې هم مددګارې دي. اوس خو به **اِن شاءَاللّٰه** عَزَّوَجَلَّ دا وسوسه سره د جرړې ختمه شي چه د اللّٰه عَزَّوَجَلَّ نه سِوا ګني څوك هډو مدد كولې نه شي. د مزې خبره داده چه كوم مسلمانان د مكّه مُكرّمه نه په هجرت مدينه مُنوّره ته اورسيدل هغوئ ته **مُهاجر** وائې او د هغوئ مددكونكو ته **انصار** وائې او په دې هر هوښيار پوهيږي چه د ”**انصار**“ لُغوي معنٰي ”مددګار“ ده.

اللّٰه كرے دل ميں اُتر جائے مرى بات

مفهوم: اللّٰه دې اوكړي چه زما خبره ستا زړه ته كوزه شي.

## اللّٰه والا ژوندي دي

**اوس** کیدې شي چه شیطان په زړه کښې دا ''وسوسه'' در واچوي چه د ژوندو نه مدد غوښتل خو صحیح دي خو د وفات نه پس مدد غوښتل نه دي پکار. که په لاندیني آیت او د دې ورروستي مضمون باندې سوچ اوکړې نو اِنْ شاءَاللهعَزَّوَجَلَّ د دې وسوسې جرړې به هم غوخې شي. چنانچه پاره 2 سُورةُالبَقَرة آیت 154 کښې ارشاد کیږي:

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ یُّقْتَلُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌؕ بَلْ اَحْیَآءٌ وَّ لٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۵۴﴾

**مفهوم ترجمه کنزُالایمان: او څوك چه د الله عَزَّوَجَلَّ په لار کښې قتل کړې شي هغوئ ته مړه مه وائې بلکه هغوئ ژوندي دي خو تاسو ته[د هغوئ] خبر نشته.**

## انبیاء عَلیهِمُ السَّلام ژوندي دي

**چه** د شُهَداء د ژوند دا حال دې نو انبیاء علیهِمُ الصَّلٰوةُوَالسَّلام چه د شهیدانو نه په مرتبه او شان کښې بالاتِّفاق برتر او اوچت دي د هغوئ په ژوندي کیدو کښې بیا څه شك پاتې کیدې شي. حضرت سیِّدُنا امام بَیهَقِي عَلَیْهِ رَحْمَةُ اللّٰهِ الْقَوِي دحیاتِ انبیاء په باره کښې یوه رِساله لیکلې ده او په''**دلائِلُ النُّبوّه**'' کښې فرمائي چه انبیآء علیهِمُ الصَّلٰوةُوَالسَّلام د شُهَداء په شان خپل رب سره ژوندي دي. (الحاوي للفتاویٰ للسیوطی ج2 ، ص263 دلائل النبوة للبیهقی ج 2 ص 388 دارالکتب العلمیة بیروت)

## اولیاء ژوندي دي

**حضرت** شاه ولیُّ الله مُحَدِّث دهلوي عَلَيۡهِ رَحۡمَةُ اللّٰهِ الۡقَوِي د "همعات" په همعه نمبر11 کښې د یوولسمې ځوان غوثِ پاك رَحۡمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى عَلَيۡه په شانِ عَظَمت نِشان بیانولوکښې لیکي: حضرت مُحيُ الدِّین عبدُالقادر جیلاني قُدِّسَ سِرُّهُ الرَّبَّانِي

اَنْدْ وَلِهٰذا گُفْتَه اَنْدْ كِه اِيْشاں دَرْ قَبْرِ خُودْ مِثْلِ اَحياء تَصَرُّف مِيْ كُنَنْد

ترجمه: **هغه شیخ مُحيُ الدِّین عبدُالقادر جیلاني** قُدِّسَ سِرُّهُ الرَّبَّانِي **دي، لِهٰذا وائي چه هغوئ** رَحۡمَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى عَلَيۡه **په خپل قبرشریف کښې د ژوندو په شان تصرُّف کوي- (یعني د ژوندو په شان با اختیاره دي)** (همعات ص 61 اكاديمية الشاه ولي الله الدهلوي باب الاسلام حيدرآباد)

بهرحال انبیآءِکِرام عَلیهِمُ السَّلام او اولیآءِعِظام رَحِمَهُمُ اللّٰهُ تَعَالٰی حیات یعني ژوندي وي او مونږ د مړو نه نه بلکه د ژوندو نه مدد غواړو او د الله عَزَّوَجَلَّ په عطاء [یعني په ورکړې شوي طاقت] هغوئي حاجت پوره کونکي او مشکل حل کونکي منو. آو خو د الله عَزَّوَجَلَّ د عطاء [یعني ورکړې شوي طاقت] نه بغیر یو نبي یا ولي یوه ذرّه هم نه شي ورکولې او نه د چا مدد کولې شي.

## امامِ اعظم د سرکار نه مدد اوغوښتو

د **کروړونو** حنفیانو پیشواحضرت سیِّدُنا امام اعظم ابوحنفیه رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنۡهُ په "**قصیده نُعمان**" کښې په بارګاهِ رِسالت صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم کښې د مدد درخواست عرض کوي:

يَا اَكْرَمَ الثَّقَلَيْنِ يَا كَنْزَ الْوَرٰى  جُدْ لِيْ بِجُوْدِكَ وَاَرْضِنِيْ بِرِضَاكَ
اَنَا طَامِعٌ بِالْجُوْدِ مِنْكَ لَمْ يَكُنْ  لِاَبِيْ حَنِيْفَةَ فِي الْاَنَامِ سِوَاكَ

يعنې اے د پيريانو او انسانانو نه بهتره او د الله عَزَّوَجَلَّ د نعمتونو خزانې! الله عَزَّوَجَلَّ چه تاسو ته څه درکړي دي د هغې نه ماته هم راکړئ او الله عَزَّوَجَلَّ چه تاسو ځنګه خوشحاله کړي ئې تاسو ما هم خوشحاله کړئ، زه ستاسو د سخاوت اُمّيدوار يم، ستاسو نه سِوا د ابوحنيفه په مخلوق کښې هيڅ څوک هم نشته.

صَلُّوا عَلَى الحَبِيب!  صَلَّى اللهُ تَعالٰى عَلٰى مُحَمَّد

## امام بو صيري مدد اوغوښتلو

**حضرت** امام شرفُ الدِّين بوصيري رَحۡمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيۡه په خپله مشهوره ''**قصيدهِ بُرده شريف**'' کښې د سرکارِمدينه صَلَّى اللهُ تَعَالٰى عَلَيۡهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم نه د مدد درخواست کوي اوعرض کوي:

يَا اَكْرَمَ الْخَلْقِ مَا لِيْ مَنْ اَلُوْذُ بِهٖ  سِوَاكَ عِنْدَ حُلُوْلِ الْحَادِثِ الْعَمَمِ

اے د ټول مخلوق نه بهتره، زما ستاسو نه سِوا بل څوک نشته، چه زه د مُصيبت په وخت کښې د هغه پناه واخلم. (قصيدهٔ بُرده ص 36)

اِمدادُ الله مُهاجِر مکّي رَحۡمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيۡه په خپل دِيوان''**ناله اِمداد**''کښې عرض کوي:

لگا تکیہ گناہوں کا پڑا دن رات سوتا ہوں
مجھے اب خوابِ غفلت سے جگا دو یا رسول اللہ

**مفهوم:** د ګناهونو په بالښت شپه او ورځ اُوده پروت يم، ما د غفلت د خوب نه رابيدار کړئ يا رسول الله.

صَلُّوا عَلَى الحَبِيب! صَلَّى اللهُ تَعالٰى عَلٰى مُحَمَّد

## (5) لوټه مخ په قبله شوه

**يو ځل** د جِيلان شريف د مَشائِخ كِرام رَحِمَهُمُ اللهُ تَعَالٰى يوه ډله د حضور سيِّدُنا غوثِ اعظم عَلَيْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَكْرَم په مبارك خدمت كښ حاضره شوه، هغوئ اوليده چه ستاسو رَحْمَةُاللهِتَعَالٰىعَلَيْه لوټه مخ په قبله نه وه (نو د هغې طرف ته ئې ستاسو رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه توجُّه رااوګرځوله نو) هغوئ رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه خپل خادِم ته د جلال نه ډك نظر باندې اوكتل. هغه ستاسو رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰى عَلَيْه جلال برداشت نه كړې شو يو دم اوغورزيدو او وفات شو، بيا ئې يو نظر په لوټه واچولو نو هغه پخپله مخ په قبله شوه. (بهجة الاسرار ص 101)

*خدارا! مرہمِ خاکِ قدم دے — جگر زخمی ہے دل گھائل ہے یا غوث*

مفهوم: د خدائے د پاره د خپلو ښپو د خاورو مرهم را كړئ.ځيګر زما زخمي او زړه مې سُورې دې، يا غوث پاك!

صَلُّوا عَلَى الحَبِيب! صَلَّى اللهُ تَعالٰى عَلٰى مُحَمَّد

## لوټه مخ په قبله كدئ

دسركارِ **بغداد**حضورِغوثِ پاك رَحْمَةُاللهِتَعَالٰىعَلَيْه ديوانو! يقيناً د محبّت اوچته درجه داده چه د خپل محبوب هره يوه ادا په زړه سره خپله كړې

شي. په دې وجه که کیدې شي نو د لوټې ټوټۍ همیشه مخ په قبله کړئ. حضور **مُحدِّثِ اعظم پاکستان** حضرت مولانا سردار احمد صاحب رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَیْه به د لوټې سره سره خپل پیزارمبارك هم مخ په قبله کیښودلو. الحَمدُلله عَزَّوَجَلَّ سګِ مدینه عُفِيَ عَنه د دې دواړو اولیائے کِرام رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَیْهُمَا په اِتّباع کښې چه څومره کیدې شي خپله لوټه اوپیزار مخ په قبله ګدي. بلکه خواهش ئې دا وي چه هر څیز مخ په قبله وي.

## د مخ په قبله کښیناستونکي کس حِکایت

**خوږوخوږو اسلامي وروڼړو!** د نورو څیزونو سره سره که کیدې شي نو مونږ ته خپل مخ هم د قبلې طرف ته د ساتلو عادت جوړول پکار دي ځکه چه د دې برکتونه بیشمیره دي. چنانچه حضرت سیِّدُنا امام زرنوجي رَحْمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَیْه نقل فرمائي: دوه طلبه د علمِ دین حاصلولو د پاره پردیس [یعنې بل وطن] ته تلي وو، دواړو یو ځائ سبق وئېلو، چه کله یو څو کاله پس خپل وطن ته لاړل نو په هغوئ کښې یو **فَقِیه** (یعني زبردست مُفتي و عالِم) جوړ شوې وو او هغه بل د عِلم و کمال نه خالي پاتې وو. د هغه ښار عُلَمائے کِرام رَحِمَهُمُ اللهُ تَعَالٰی په دې خبره ډیر سوچ او فِکر اوکړو، د دواړو د علم حاصلولو په طریقه کار، اندازِ تِکرار او د ناستې ولاړې طریقو وغیره تحقیق ئې اوکړو نو یوه خبره په ښکاره طریقه مخې ته راغله چه کوم یو فَقِیه جوړ شوې وو د هغوئ دا معمول

[همیشه دا عادت] وو چه **هغه به د سبق یادولو په وخت کښې مخ په قبله کیناستلو** او هغه بل کوم چه بالکل خالي راغلې وو د هغه د ناستې په وخت کښې قبلې طرف ته د شا کولو عادت وو. چنانچه ټول عُلَماء اوفُقَهاء رَحِمَهُمُ اللهُ تَعَالٰی په دې خبره باندې اتفاق اوکړو چه **دا خوش نصیب د استقبالِ قبله** (یعني قبلې طرف ته مخ کولو) **د پابندئ په برکت سره فَقِیه جوړ شوې دې ځکه چه د ناستې په وخت کښې کعبةُ الله شریف ته مخ کول سنّت دي.** (تعلیم المتعلم طریق التعلم ص 68)

## "بیتُ اللّٰهِ الکرِیم" د 13 حُروفو په نِسبت د مخ په قبله ناستې 13 مدني ګلونه

❁ سرکارِ مدینه، سلطانِ باقرینه، قرارِقلب و سینه، فیضِ ګنجینه صَلَّی اللهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم به عام طور مخ په قبله کښیناستلو. (احیاءُ العلوم ج2 ص 449 دار صادر بیروت)

## درې فرامِینِ مصطفٰی صَلَّی اللهُ تَعَالٰی عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم

(1) په مجلِسونو[یعني د ناستې په ځائیونو]کښې د ټولو نه مُکرَّم (یعني د عزَّت)**مجلِس هغه دې په کوم کښې چه قبلې طرف ته مخ کړې شي**-
(المعجم الاوسط للطبراني ج 6 ص 161 حدیث 8361 دارالفکر بیروت)

(2) د هر شي د پاره شَرَف (یعني بزرګي) ده او د مجلِس (یعني د ناستې) شرف دادې چه په هغې کښې **قبلې ته مخ** کړې شي. (المعجم الکبیر للطبراني ج 10 ص 320 حدیث 10781 داراحیاءُ التراث العربي بیروت)

(3) د هر څيز د پاره سرداري ده او د مجلسونو سرداري په هغې کښې قبلې ته مخ کول دي. (المعجم الاوسط للطبراني ج2 ص 20 حديث 2354 دارالفکر بيروت)

۞ د مُبلِّغ او مُدرِّس د پاره د بيان او تدريس په وخت کښې سُنّت دا دي چه قبلې طرف ته شا ساتي چه د هغوئ نه د علم خبرې اوريدونڪو مخ قبلې طرف ته کيدې شي چنانچه حضرت سيِّدُنا علّامه حافظ سخاوي عَلَيْهِ رَحْمَةُ اللّٰهِ الْقَوِی فرمائی: نبيِّ کريم صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم به قبلې ته څکه شا کوله چه تاسو صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰی عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّم چاته عِلم زده کوي چه د هغوئي مخ قبلې طرف ته اوسي. (المقاصد الحسنة ص 88 دارالکتاب العربي بيروت)

۞ حضرت سيِّدُنا عبدُالله بن عُمر رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُمَا به اکثر مخ په قبله کښينا ستلو. (الادب المفرد ص 291 حديث 1137)

۞ د قرآنِ پاك او درسِ نِظامي استاذانو ته پکار دي چه که کيدې شي نو د سبق ښودلو په وخت کښې خپله شا قبلې ته ساتي چه د شاګردانو مخ قبلې ته شي او شاګردانو ته د مخ په قبله ناستې سنّت، حِکمت، او نيّت هم اوښائي او د ثواب حقدار جوړ شي. چه کله د تدريس نه فارِغ شي نو پخپله دې هم مخ په قبله د کښيناستلو کوشش کوي.

۞ ديني طلبه دې صرف په داسې صورت کښې مخ په قبله کښيني چه استاذ ته ئې مخه کيدې شي ګني د عِلم خبرې زده کولو کښې مشکِلات پيدا کيدې شي.

۞ د **خطیب** د پاره د خطبه وئیلو په وخت کښې کعبې ته شا کول سُنّت دي، او مستحب دادي چه د اوریدونکو مخ خطیب طرف ته وي.

۞ بالخصوص تِلاوت، دیني مطالعه، فتاوٰی لیکلو، کتابونو لیکلو، دعا او وظیفې او د درود و سلام وغیره په موقعو باندې او عام طور چه کله هم ناست ئې یا ولاړ ئې او څه منع نه وي نو **قبلې ته د مخ** کولو عادت جوړ کړئ او د آخرت دپاره د ثواب خزانه جمع کړئ. (د قِبلې ښي یا ګڅ طرف ته که د 45 ډِګرې په زاویه کښې دننه دننه مخ وي نو مخ به قبلې ته منلې شي)

۞ که **کیدې شي** نو میز او کرسۍ وغیره داسې ګیږدئ چه کله هم کښینئ چه ستاسو **مخ قبلې ته** وي.

۞ **که** اتّفاقاً مخ په کعبه کښیناستئ او د ثواب د ګټلو نیّت هم نه وو نو ثواب به نه ملاویږي لِهٰذا ښه ښه نیّتونه کول پکار دي مثلاً دا نیّتونه (۱) د آخرت د ثواب (۲) د سنّت د ادا کولو او (۳) د کعبې شریفې د تعظیم په نیّت مخ په قبله کښینم. دَ دیني کتابونو او اسلامي سبقونو لوستلو په وخت کښې دا نیّت هم شاملیدې شي چه د مخ په قبله ناستې د سنّت په ذریعه به د عِلمِ دین برکت حاصلوم. ان شآءَ الله عَزَّوَجَلَّ

❁ **پاك** و هِند او نیپال، بنګال او سي لنکا وغیره کښ چه د کعبې طرف ته مخ کړې شي نو ورسره مدینه منورّې ته هم مخ شي لِهٰذ دا نیّت هم ورسره شامل کړئ چه تعظیماً مدینې منوّرې ته مخ کوم.

بیٹھنے کا حسیں قرینہ ہے    رُخ اُدھر ہے جِدھر مدینہ ہے

**مفهوم**: د ناستې خومره ښه ښکلې طریقه ده مخ مې هغه طرف ته دې کوم طرف ته چه مدینه ده.

دونوں عالم کا جو نگینہ ہے    میرے آقا کا وہ مدینہ ہے

**مفهوم**: زما د آقا مدینه د دوارِو جهانو غمې دې.

رُوبرُو میرے خانۂِ کعبہ    اور اَفکار میں مدینہ ہے

**مفهوم**: مخامخ زما خانه کعبه ده او په فِکرونو کښ مې مدینه ده.

## بغدادي نُسخه

(**ان شآءالله** عَزَّوَجَلَّ ټول کال به د آفتونو نه په حفاظت کښ ئې)

د **ربیعُ الغوث** [ربیعُ الآخِر] په یوولسمه شپه (یعني ښه شپه) د سرکارِ غوثِ اعظم عَلَیْهِ رَحْمَةُ اللهِ الْاَکْرَم یوولس نومونه (اول آخر یوولس ځله درود شریف) اولولئ او یوولس کهجورې پرې دَم کړئ او په دغه شپه ئې اوخورئ، **ان شآء الله**عَزَّوَجَلَّ ټول کال به د مُصیبتونو نه په حفاظت کښ اوسئ. یوولس نومونه دا دي:

﴿1﴾ یَاشَیخ مُحیُ الدِّین ﴿2﴾ یَاسَیِّدمُحیُ الدِّین ﴿3﴾ یَا مَولَانَا مُحیُ الدِّین ﴿4﴾ یَا مَخدُوم مُحیُ الدِّین ﴿5﴾ یَا دَروِیش مُحیُ الدِّین ﴿6﴾ یَا خَواجَه مُحیُ الدِّین ﴿7﴾ یَا سُلطَان مُحیُ الدِّین ﴿8﴾ یَا شَاه مُحیُ الدِّین ﴿9﴾ یَاغَوث مُحیُ الدِّین ﴿10﴾ یَاقُطب مُحیُ الدِّین ﴿11﴾ یَاسَیِّدَ السَّادَات عَبدَالقَادِر مُحیُ الدِّین

## د بغدادی نُسخې مدني سپرلي

د یو اسلامي ورور بیان په خپلو الفاظو کښې بیانوم: د یوولسم ربیعُ الغوث ۱٤۲٥ھ (2003ء) د کلیزې یوولسمې شریفې په موقع باندې زه د دعوتِ اسلامي د طرف نه په کورنګۍ بابُ المدینه کراچۍ کښې کیدونکې اجتماعِ ذکر و نعت کښې شریك ووم، په اجتماعِ ذکر و نعت کښې د سنّتو نه ډك بیان په دوران کښې "**بغدادي نُسخه**" اوښودلې شوه. د بیان نه پس په سلسه عالیه قادریه رضویّه کښې د بیعت سلسله شروع شوه، په دې دوران کښې په ناسته ناسته زما سترګې اولګیدلې، د سر سترګې مې څه پټې شوې چه د زړه سترګې مې اوغړیدلې! څه وینم چه د یوولسمې ځوان **غوثِ پاك** رَحمَةُ اللهِ تَعَالٰی عَلَیه تشریف راوړې دې او څادر ئې خور کړې دې، زه ورمخکښې شوم او څادر مې اونیولو ماته داسې معلومیده چه نور هم ډیرو خلقو څادر نیولې دې خو څوك ښکاري نه! د مائِك [سپیکر] نه د راتلونکې آواز مطابق ما د بیعت الفاظ ادا کړل، چه کله د بیعت سلسله ختمه

شوه نو ما د غوثِ پاك په بارګاه کښې عرض اوکړو: يا مُرشِد! زما د کور والا په اُميد ده، د اولاد د درد په وجه په ډير تکليف کښې ده، ډاکټر ورته د آپريشن وئيلي دي.کرم اوکړئ! ارشاد ئې اوفرمائيلو: "اوس چه کومه **بغدادي نُسخه** بيان کړې شوه د هغې مطابق عمل اوکړه." ماعرض اوکړو: زما ګرانه پير صاحِبه! شپه ډيره تيره شوې ده او په دې نُسخه خو د شپې عمل کول ضروري دي، اوئې فرمائيل: "ستا د پاره اجازت دې چه نن د ورځې په وخت کښې د يوولسم تاريخ ختميدو نه مخکښې په دې نسخه عمل اوکړه.او واوره! ان شآء الله عَزَّوَجَلَّ **د آپريشن نه بغير به دوه غبرګوني هلکان پيدا کيږي.** د يو نوم **حسّان** او د بل نوم **مُشتاق** کښيږده، د دواړو په ښتونو به زما قدم وي." زه چه کور ته راغلم نو د ورځې په وخت کښې مې په کور والا باندې د **بغدادي نُسخې** مطابق يوولس کهجورې اوخوړلې. الحمدُ لله عَزَّوَجَلَّ چه څنګه ئې کهجورې اوخوړلې آرام ئې راغې بيا چه کله وخت راغې نو د آپريشن نه بغير ئې ډير په آ سانئ سره اولاد پيدا شو او په خدائے مې دې قسم وي! زما د مُرشِد پاك غوثِ اعظم دستګير (دَسْتْ.ګِير) راکړې شوي د غيبو د خبر مطابق دوه غبرګ هلکان پيدا شو. د سرکارِغوثِ پاك رَحْمَةُاللهِتَعَالٰیعَلَيْه د ارشاد مطابق ما د يو نوم حسّان او د بل نوم مشتاق کيښودلو.

یہ دل یہ جگر ہے یہ آنکھیں یہ سر ہے جدھر چاہو رکھو قدم غوثِ اعظم

مفهوم: دا زړه، دا ځیګردې، دا سترګې دي دا سر دې ، په کوم ځائ چه غواړې خپل قدم مبارك کښیږدئ اے غوثِ اعظم.

# جیلاني نُسخه

(د خیټې د بیمارو دپاره)

د **ربیعُ الغوث** [ربیعُ الآخِر] په یوولسمه شپه په درې کهجورو باندې یوځل سوره فاتِحه، یوځل سوره اِخلاص، بیایوولس ځله. یَاشَیخ عَبدَالقَادِر جِیلانِي شَیئاً لِلّٰهِ اَلْمَدَد (اول آخر یوځل درود شریف) اولولئ او یوه کهجوره پرې دم کړئ، د هغې نه پس هم په دغې طریقه دویمه او دریمه کهجوره هم دم کړئ، دا کهجورې په شپه شپه کښې خوړل ضروري نه دي. چه څوك ئې کله خوړل غواړي په هره ورځ ئې خوړلې شي. **ان شآءالله** عَزَّوَجَلَّ د خیټې هرې بیمارئ (مثلاً دخیټې درد، قبض، ګیس، پیچس، اُلټئ، د خیټې اَلْسَر وغیره) د پاره فائِده مند دي.

آپ جیسا پیر ہوتے کیا غَرض در در پھروں آپ سے سب کچھ ملا یاغوثِ اعظم دست گیر

**مفهوم**: چه ستاسو په شان پیر لرم نو ولې به در په در به ګرځم، ستاسو نه راته هر څه میلاؤ دې اے غوث اعظم دستګیره.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی سَیِّدِ الْمُرْسَلِیْنَ اَمَّا بَعْدُ فَاَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ ؕ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ؕ

## د سنّتو سپرلي

اَلْحَمْدُ لِلّٰه عَزَّوَجَلَّ د تبليغ قرآن و سنّت عالمګيرغيرسياسي تحريک دعوت اسلامي په خوشبودارمدني ماحول کښې په کثرت سره سنّتونه زده کېږي او ښودلې شي، هره پنجشنبه (يعني زيارت) د ماښام د مانځه نه پس ستاسو په ښار کښې کيدونکي د دعوت اسلامي په هفته واره اجتماع کښې د ټوله شپه تيرولومدني عرض دې، د عاشقانِ رسول سره په مدني قافلو کښې سفر، او هره ورځ د "فکرِمدينه" په ذريعه د مدني انعاماتو رساله ډکولو او د خپل ځائ ذمه دارته د جمع کولو عادت جوړ کړئ. اِنْ شَآءَ اللّٰه عَزَّوَجَلَّ د دې په برکت سره به دسنّتو د پابند جوړيدو، د ګناهونو نه د نفرت کولو او د ايمان د حفاظت دپاره د سوچ او فکر ذهن جوړېږي. هراسلامي وروړ دې خپل دا ذهن جوړکړي چه "ماته د خپل ځان او د ټولې دنيا د خلقو د اصلاح کوشش کول دي، اِنْ شَآءَ اللّٰه عَزَّوَجَلَّ د خپل ځان د اصلاح د کوشش کولو د پاره په "مدني انعاماتو" عمل او دټولې دنيا د اصلاح د کوشش د پاره په "مدني قافلو" کښې سفرکول دي. اِنْ شَآءَ اللّٰه عَزَّوَجَلَّ









فيضانِ مدينه محلّه سوداګران زړه سبزي منډئ، بابُ المدينه (کراچئ)

UAN: +923 111 25 26 92 Ext: 1262

Web: www.dawateislami.net / E-mail: translation@dawateislami.net